# شریعت

ورځپاڼه

د افغانستان اسلامي امارت مرکزي نشراتي ارګان

د تأسيس کال ۱۳۷٤ هـ.ش/ دوهم پړاو / ۷۰۲ ګڼه / يکشنبه ۰۹ رمضان‌المبارک ۱٤٤٦ هـ.ق / د کب ۱۹مه ۱٤۰۳ هـ.ش/ ۰۹ مارچ ۲۰۲۵ میلادي





## مولوی ذبیح‌الله مجاهد: حفاظت از عفت، عزت و حقوق شرعی زنان اولویت امارت اسلامی است

همزمان با فرا رسیدن هشتم مارچ، روز جهانی همبستگی زنان، مولوی ذبیح‌الله مجاهد، سخنگوی امارت اسلامی می‌گوید حفاظت از عفت، عزت و حقوق شرعی بانوان در کشور از اولویت‌های نظام کنونی است.

به گفته سخنگوی امارت اسلامی، اکنون زنان در کشور از نگاه فزیکی و روانی در مصونیت کامل قرار داشته، از هرگونه خشونت در برابر آنان جلوگیری و همچنان هیچ کسی حق ندارد حقوق زنان را ضایع و به نگاه بد به آنان بنگرد.در بیانیه گفته شده که محاکم و دیگر نهادهای امارتی مکلف‌اند تا در تامین حقوق زنان تمام تلاش‌شان را به خرج دهند.

سخنگوی امارت اسلامی تأکید کرده که این نهادها حقوق ... ص۳

## اسلامي نړۍ د فلسطين په اړه خپل مسئوليت سر ته نه دی رسولی؛ ښښنه دې وغواړي



**شریعت:** فلسطین د ټول اسلامي امت ګډه قضيه ده، خو تر اوسه، هغسې چې تمه کېږي، هېڅ اسلامي هېواد د دې قضيې لپاره عملي ګامونه نه دي اخيستي.

په همدې تړاو اميرالمؤمنين شيخ هبة الله اخوندزاده د سعودي په جده ښار کې «د اسلامي مذهبونو تر منځ د پل جوړولو» کنفرانس ته په استول شوي پيغام کې ټينګار کړی، چې اسلامي نړۍ بايد لومړی له الله او بيا د فلسطين له ولسه ښښنه وغواړي.

ياد پيغام د افغانستان د عدليې وزير مولوي عبدالحکيم شرعي غونډې ته وړاندې کړ. هغه وويل، چې فلسطين د ټول اسلامي امت ګډه قضيه ده، خو تر اوسه هېڅ ... ۳مخ

## روان کال د سترو کانونو ۱۱ پروژې منظورې شوې



د رياست‌الوزراء اقتصادي معاونيت وايي چې د دغه معاونيت له لوري، په ۱۴۰۳ مالي کال کې د ستر مقياس د کان کيندنې او استخراج يوولس پروژې منظورې شوې دي.

د رياست‌الوزراء د اقتصادي معاونيت په راپور کې ويل شوي چې په منظورو شويو پروژو کې د جوزجان د يتيم تاق سمنټو پروژه، د فارياب د ميمنې مالګې د کان پروژه، د جوزجان د درزاب مالګې د کان پروژه، د فارياب د اندخوی مالګې د کان پروژه، د کندهار د شاه ولي کوټ د دره نور سيمې د مرمر ډبرو پروژه، په لوګر کې د کرومايټو ساحې د پراختيا پروژه، د بادغيس د تايمني لامان درې د ډبرو سکرو پروژه، د هرات د کشک او تيرپل ګازو حوزې پروژه، د فارياب د طوطي ميدان ګازو پروژه، د جوزجان د لوی ځنګل ګازو پروژه او د لوګر د التمور سمنټو پروژه شامله ده.

## عشق اباد او کابل د نفتو او ګازو پروژو پر زياتولو بحثونه کړي



ترکمنستان کې د افغانستان سفير فضل محمد صابر د نفت او ګازو چارو کې د ترکمنستان ولسمشر مرستيال باتر امان اف سره کتلي دي.

ترکمنستان کې د افغانستان سفارت خبر ورکړی، چې دې کتنه کې دواړو لوريو د افغانستان او ترکمنستان ترمنځ د نفت او ګازو برخه کې د سترو بنسټيزو پروژو پر زياتېدو په ځانګړي ډول تاپي پروژه کې د پانګونې تطبيق او نفت او ګازو انتقال پر زياتېدو خبرې کړې دي.

دې کتنه کې يادو چارواکو د افغانستان او ترکمنستان ترمنځ د ګډو پروژو د پلي کولو لپاره د اسانتياوو په رامنځته ... ۳مخ

## تېرو ۱۱ مياشتو ۱۱۰۰ ټنه جلغوزي صادر شوي



د صنعت او سوداګرۍ وزارت د معلوماتو له مخې، د روان کال په تېرو ۱۱ مياشتو کې له افغانستان نورو هېوادونو ته ۱۱۰۰ ټنه جلغوزي صادرې شوي.

د صنعت او سوداګرۍ وزارت وياند، اخندزاده عبدالسلام جواد وايي، د روان ۱۴۰۳ کال له پيل بيا د سلواغې تر پايه د شاوخوا ۱۴ ميليون ډالرو په ارزښت بهرنيو هېوادونو ته د جلغوزيو صادرات شوي دي.

نوموړی په يوې ويډيو کليپ کې زياته کړې، دغه صادرات ... ۳مخ

## پاکستاني چارواکو د افغان کډوالو د اېستلو ګواښ کړی

د پاکستان کورنيو چارو وزارت له اسناد لرونکو افغان کډوالو غوښتنه کړې چې د مارچ مياشتې تر وروستۍ نېټې له دغه هېواده ووځي. د وزارت په اعلاميه کې افغان کډوالو ته خبرداری ورکړل شوی، چې د راتلونکې مياشتې له لومړۍ به د کډوالو د ايستلو لړۍ پيل شي. په اعلاميه کې ويل شوي، چې حکومت ... ۳مخ

## سرمقاله



## افغان کډوال نورو هېوادونو کې

کډوالي او د خپلو اصلي مېنو پرېښودل د بشر له پيدايښت سره سم شوي. انسانان په طبيعي توګه د وخت په تېرېدو د مختلفو دلايلو په سبب اړ شوي چې خپلې مېنې پرېږدي او په بل، خو خوندي ځای کې پناه واخلي. ښايي ځوک له طبيعي پېښو، بل د کاروبار او د خپلو ګټو، کوم بل ځوک د زده کړو، عقيدې او په نورو سببونو خپل وطن پرېږدي. پخواني تمدنونه زياتره د سمندرونو په غاړو اباد شوي او دا ددې ښکارندويي کوي چې پخوانيو انسانانو د اوبو د مسير له منحرېفېدو او حتا وچېدو په صورت کې په ډله ييز ډول خوځېدل.

افغانان هم د کډوالۍ او مهاجرت اوږده مخينه لري. افغانان وخت په وخت د جګړو، فقر، بېوزلي او د پرديو د تاړاکونو په سبب اړ شوي چې يا د هېواد دننه خپلې مېنې يو خوا بل ولېږدوي او يا د نړۍ لرو پرتو هېوادونو ته لاړ شي. پرديو تاړاکونو نه يوازې زموږ د وخت دولتونه نړولي، بلکې زموږ سرمايې او ماغزه يې هم فرار ته اړ کړي. پردي تاړاک او تبعيد د ابن سينا، جلال الدين بلخي او سيدجمال الدين افغان غوندې شخصيتونه هم د نورو په ديار کې ډېره کړل چې اوس يې په سپين سترګي خپل سري ګڼي.

بدبختانه افغانان اوسمهال په ګاونډيو او نورو اروپايي هېوادونو کې تر ډول ډول ګواښونو، سرخوږيو او سپکو سپورو لاندې ژوند کوي. هغو هېوادونو چې زموږ د مېلمانه پالنې وياړ يې درلود، دا وياړ يې په خپل ناانساني چلند په اوبو يووړ. حتی د زړه په وينو ګټلی مال ترې ستون شو، په سخت ژمي او سړو کې کډې وربار شوې، کورونه په بلډوزونو ورونړول شول او د قانوني اسنادو باوجود هم اخراج شول.

بلخوا، د اسلامي امارت په بياواکمنۍ کې لسګونو زرو افغانانو بېرته خپلو مېنو ته زړه ښه کړی او راغلي. افغان حکومت هم په ګاونډيو هېوادونو او نورو هېوادونو کې مېشتو افغانانو باندې بيا بيا غږ کړی چې هېواد کې يې سرومال خوندي، پت يې پر ځای او بايد په پرديو هېوادونو کې ... ۳مخ

ماه مبارک رمضان فرصتی که نباید هدر برود ۲مخ

له نفلي حج او عمرې، د فلسطين له مسلمانانو سره مرسته اړينه ده! ۲مخ

## د حيرتان وسپنې پټلۍ د ګټې اخيستو، ساتنې او پاملرنې ترون پر غځولو هوکړه وشوه



د ټولګټو وزارت وايي، چې تخنيکي پلاوي ازبيکستان هېواد ته د سفر په ترڅ کې د حيرتان وسپنې پټلۍ د ګټې اخيستو، ساتنې او د پاملرنې په ترون غځولو هوکړه کړې ده.

د ياد وزارت د خبر له مخې، چې دغه ترون پخوا د دې هېواد له «سوګديانا ټرانس» کمپنۍ سره شوی و، موده يې پای ته رسېدلې وه.

ټاکل شوې، چې تر ياد هوکړه‌ليک وروسته د دواړو هېوادونو مسئولينو له لوري د حيرتان د ګټې اخيستو، ساتنې او د پاملرنې ترون د راتلونکو دوو کلونو لپاره تمديد شي.

## د امر بالمعروف، نهي عن‌المنکر او شکايتونو اورېدلو وزارت مسلکي او د پاليسۍ مرستيال وټاکل شو

د اسلامي امارت زعيم اميرالمؤمنين حفظه‌الله د فرمان له مخې، د بلخ د امر بالمعروف، نهي عن‌المنکر او شکايتونو اورېدلو پخواني رييس شيخ نورمحمد د امر بالمعروف، نهي عن‌المنکر او شکايتونو اورېدلو وزارت د مسلکي او ... ۳مخ

## ننګرهار کې د املوکو او لېمو بڼونه جوړېږي



د ننګرهار ولايت د کرنې، اوبو لګولو او مالدارۍ رياست مسئولين وايي، چې په دغه ولايت کې د دريو ولسواليو په حدودو کې پر ۱۰۰ جريبه ځمکه د املوکو او لېمو بڼونه جوړېږي.

د ياد رياست رئيس مولوي محمد ولي محسن باختر اطلاعاتي آژانس ته وويل چې ياد بڼونه به د ډانېډا موسسې په مالي ملاتړ په روداتو، هسکې مېنې او کوټ ولسواليو کې جوړ شي.

مولوي محمد ولي محسن زياته کړه، چې د دې بڼونو جوړولو موخه د سرو املوکو د توليد زياتوالي او د دغه محصول د کرنې وده ده.

د يادونې وړ ده چې دغه پروژه به د يادو ولسواليو د خلکو اقتصاد پياوړی کړي او لسګونو تنو ته به په کې د کار زمينه هم برابره شي.

# ماه مبارک رمضان فرصتی که نباید هدر برود

**احمد**



ماه مبارک رمضان به سه دهه تقسیم شده است، دهه اول رحمت، دهه دوم مغفرت ودهه سوم نجات از آتش دوزخ می باشد .

ماه مبارک رمضان نزد خداوندسبحان بهترین وبا فضیلت ترین ماه است، دراین ماه ، مسلمانان به تسبیح، تراویح، صدقات وعبادات می پردازند واز خداوندعزوجل طلب مغفرت می کنند.

ماه مبارک رمضان به این لحاظ به دهه رحمت، مغفرت و نجات از آتش دوزخ، تقسیم شده است تا ما مسلمانان به باور و عقیده کامل این سه دهه را مشغول عبادت باشیم تا فضایل وبرکات این ماه مبارک را از دست ندهیم ، زیرا

مسلمانان روزه دار در دهه اول این ماه انشاءالله مورد رحمت خداوند(ج) قرار خواهند گرفت، در دهه دوم مغفرت خداوندسبحان نصیب شان خواهد شد و پس از سپری نمودن روزه ماه مبارک، آتش دوزخ بر مسلمانانی که سی روز ماه مبارک رمضان را روزه گرفتند، تقوا وپرهیزگاری را پیشه کردند ، حرام است.

حالا که در حال عبور از دهه رحمت هستیم، یقیناً که شیطان خیلی ناراحت است که نتوانسته برای اغوای روزداران کاری کند، دهه دوم که دهه مغفرت است، فرصتی دیگری است تا بنده گان مؤمن خداوند(ج) نظر به سعی وتلاش خود مورد غفران او تعالی قرار گیرند، پس نباید فراموش کرد که اگر دهه اول و دوم به غفلت سپری شود، توفیقی برای دهه سوم که نجات از آتش دوزخ می باشد وشب قدر هم نظر به روایات متعدد در این دهه قرار دارد ، نصیب ما نخواهد شد. روی این اساس نباید فراموش کرد که، توبه کردن، ایمان داشتن به خداوند رزاق واعمال صالح از جمله اسباب مغفرت است، زمانی که این سه صفت در انسان پیدا شد، زمینه هدایت او نیز پیدا می شود. بناً اگر بنده گان مؤمن خداوند(ج) می خواهند روزه داری در زندگی شان تأثیر مثبت داشته باشد، از محرمات دوری کنند، زیرا روزه گرفتن با غذای حرام وافطار با لقمه حرام ، همچنین نماز ودعا در مکان غصبی، فایده وسودی در حق انسان نخواهد داشت.

هرچند خداوند عزوجل ممکن با یک الله گفتن و یک قطره اشک ریختن تمام گناهان انسان را مغفرت کند، اما تمام دشواری ها اینجاست که حق یک انسان و یا دینی در گردن انسان باشد، هرگز بخشیده نمی شود. بناً یگانه دلیلی که توبه انسان قبول نمی شود ودعا ها هم به اجابت نمی رسد، اینست که حقوق انسان ها در بسیاری از موارد پایمال می شود که بدون شک خداوندسبحان از حق خود می گذرد نه از حق بندگانش .

پس در این صورت باید متوجه عمال وکردار خود باشیم، تا عبادات وصدقاتی را که در این ماه انجام می دهیم، مورد قبول او تعالی قرار گیرد.

# روژه د برکت او رحمتونو میاشت

**مولوي ضیاءالحق حسان - شپږمه برخه**

دنیا کې د تجارانو لپاره یو موسم وي، د هغه پر مهال د دوی مالونه په لوړو بیو او بې له ځنډه خرڅېږي، د داسې بازارونو لپاره تجاران له لرې ځایونو څخه مالونه راوړي تر څو مال یې په لوړ قیمت وپلورل شي، همداسې دنیا د اخرت لپاره د اعمالو ځای دی، دلته هم داسې ورځې او موسمونه شته دي چې عملونه په کې زیاتېږي او لوړو درجو ته رسېږي لکه د رمضان میاشت د نبوي ارشاداتو پر بناء د دې میاشتې سنت او نفلي عبادتونه د فرضو درجې او فرض بیا اویا چنده اضافه کېږي، ابراهیم رحمه الله وایي د روژې میاشت کې یوه تسبیح ویل د نورو وختونو له زرو تسبیحاتو سره برابره ده، راځئ! قدرمنو لوستونکو د اسلافو ویناوې د دې میاشتې د اهمیت په اړه را واخلو:

امام ابن جوزي رحمه الله وایي: په الله قسم که مړو ته وویل شي آرزو وکړئ، دوی به د رمضان د یوې ورځې غوښتنه وکړي.

امام ابن جوزي رحمه الله بل ځای فرمایي: د روژې میاشت د نورو میاشتو په منځ کې داسې ده لکه یوسف علیه السلام د خپلو ورونو په منځ کې یعنې لکه څرنګه چې په ټولو ورونو کې یعقوب علیه السلام ته یوسف علیه السلام محبوب و همدارنګه په ټولو میاشتو کې الله تعالی ته د رمضان میاشت محبوبه ده.

امام معلي بن فضل رحمه الله فرمایي: سلفو صالحینو به شپږ میاشتې الله تعالی ته زارۍ کولې چې روژې ته یې ورسوي او بیا به یې له روژې وروسته شپږ میاشتې لوی رب ته زارۍ کولې چې روژه ترې قبوله کړي.

ابی عمرو الاوزاعي وایي یحی بن کثیر رحمه الله به دعا کوله: ای الله ما روژې ته جوړ ورسوه او روژه مې له ګناهونو او له لغوه کارونو خوندي کړه او رانه قبوله یې کړه. (حلیة الاولیاء جلد ۳ صفحه ۶۹)

ابو الاشهب وایي: ابو رجاء به موږ ته د رمضان د تراویح لمانځه پر مهال هرو لسو ورځو کې قران کریم ختم کولو. (حلیة الاولیاء جلد ۲ صفحه ۳۰۶).

راځئ! د خپلو اسلافو په پلونو پل کېږدو او د دې مبارکې میاشتې شیبې د لوی رب په عبادت، د مسلمانانو په خدمت او له مسکینانو سره په همکارۍ ښایسته کړو.

**نور بیا...**

# روژه او توبه

**مولوي نورالحق مظهري / دویمه برخه**



د توبې په کولو کې د ځینو خلکو خطاګانې:

۱ - ځینې خلک ژر توبه نه باسي بلکې ځنډوي یې داسې فکر کوي چې وروسته به بیا توبه وباسم،دا ډېره غلطه مفکوره ده ځکه انسان نه دی خبر چې زه به تر کوم وخته ژوندی یم او بل څه وخت به زما توبه قبوله شي؟ نو چې څومره د انسان په طاقت وي باید ژر توبه وباسي.

۲ - ځینې خلک له توبې څخه غافل وي او تل دې ته ګوري چې ما خو په ظاهره کومه غټه ګناه نه ده کړې نو زه ولې توبه وباسم؟ په داسې حال کې چې انسان باید دې ته و نه ګوري چې ما خو ظاهرا ګناه نه ده کړې، بلکې تل توبه وباسي، ځکه ځینې وختونه د انسان څخه په ناخبرۍ کې ګناه کېږي او ځینې وختونه انسان داسې شیان کوي چې دی یې ګناه نه بولي سره له دې چې هغه ګناه وي، پر دې خاطر دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي: ژباړه: په دې امت کې شرک د میږیانو د پښو تر رږغ لا سپک دی، ابوبکر رضي الله عنه پوښتنه وکړه چې یا رسول الله څنګه به نو ځینې خلاصېږو؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: داسې ووایه: ای الله په تا باندې پناه غوام د دې څخه چې ستا سره شریک ونیسم په داسې حال کې چې زه پوهېږم او ستا څخه طلب د ښښې کوم د هغه شرک په ه اړه چې زه نه په پوهېږم. نو همیشه دې سړی عامه توبه باسي چې ای الله د هر ډول ګناه څخه مې توبه ده که ما په شعوري ډول کړې وي او که مې په غیر شعوري ډول کړې وي.

۳ - ځینې خلک توبه په دې خاطر نه کوي چې شاید زه بېرته ګناه ته رجوع وکړم، یا یې په دې خاطر نه کوي چې خلک ما ته پېغور راکوي، یا یې په دې خاطر نه کوي چې زما چوکې او مرتبه له لاسه ځي، دا غلط فکر دی ځکه انسان باید د ګناه د بیا کولو له وېرې توبه ونه ځنډوي بلکې هر وخت توبه وباسي که څه هم خدای مکړه ګناه ورڅخه ډېره کېږي، همدا راز د خلکو د پېغور له وېرې او چوکۍ له لاسه تللو له وېرې مسلمان ته د توبې ځنډول نه رواکېږي ځکه د توبې تر کولو پورې د انسان نجات او ژغورل تړاو لري نو د خلکو د پېغور له وجهې یا د یوې وظیفې د له لاسه ورکولو له وجهې نه باید انسان خپل ځان د هلاکت کندې ته ورواچوي.

۴ – ځینې خلک بیا توبه نه کوي ځکه د الله تعالی پر رحمت باندې اعتماد کوي، دا هم غلط فکر دي، دا صحیح خبره ده چې الله پاک رحیم او مهربان دی خو دا هم منل شوې خبره ده چې الله پاک قهار هم دی، جبار هم دی، عزیز هم دی، شدید العقاب هم دی او منقم هم دی نو لکه چې سړی باید د الله پاک رحمت ته امیدوار وي د الله پاک څخه باید وېره هم ولري، الله پاک فرمایي: ژباړه: د الله پاک عذاب د مجرمینو څخه نه لیرې کېږي. [الأنعام:الآیة ۱۴۷]

# له نفلي حج او عمرې، د فلسطین له مسلمانانو سره مرسته اړینه ده!

**حسان مجاهد**

رسول اللهﷺ فرمایي: «زه چې له خپل ورور سره د هغه د اړتیا پوره کولو لپاره لاړ شم، دا ماته له دې څخه غوره ده چې په دې جومات - یعنې نبوي جومات - کې یو میاشت اعتکاف وکړم.» (طبراني)

ستر فقیه او تابعي جابر بن زید رحمه الله، ویلي: «که زه یو یتیم یا مسکین ته یو درهم صدقه ورکړم، نو دا ماته تر نفلي حج غوره ده.» (حلیة الأولیاء (۳/ ۹۰)

امام حسن بصري رحمه الله ویلي: «یو سړی وایي: زه به حج وکړم، زه به حج وکړم، حال دا چې حج خو دي کړی دی، له خپلوانو سره اړیکې ټینګې کړه، کوم غمجن ته صدقه ورکړه، د خپل ګاونډي سره ښېګنه وکړه.» [الزهد لأحمد بن حنبل ۲۱۲/۱]

حضرت حسین بن علي رضي الله عنهما وایي:

«که زه په مدینه کې هره ورځ د یوه صاع په اندازه د یوې کورنۍ خوراکي اړتیاوې پوره کړم، یا هره ورځ د دوو صاعو په اندازه د دوی د یوې میاشتې لپاره اړتیاوې پوره کړم، دا ماته تر دې غوره ده چې له فرضي حج وروسته بیا حج ته لاړ شم.» (مصنف ابن أبی شیبة ۱۳۱۸٦)

د حنفي مذهب مشهور عالم ابن نجیم رح وایي: زموږ په زمانه کې تر نفلي حج صدقه غوره ده... په ځانګړي توګه د ګرانۍ او سختیو په ورځو کې او کله چې د صدقې ګټه نورو ته ورسېږي، نو ثوابونه څو چنده کېږي.» (البحر الرائق)

امام زرکشي شافعي رح وایي: «عبادي» په خپله فتوا کې لیکلي دي: «د ابوحنیفه رح په نظر صدقه تر نفلي حج غوره ده او په اوسني وخت کې دا نظر د منلو وړ دی.(البحر المحیط)

له امام احمد رح څخه وپوښتل شو: «یو کس څو ځله حج کړی وي او د هغه خپلوان بېوزله وي، نو دی بیا حج ته لاړ شي، که دا پیسې خپلو نېستمنو خپلوانو ته ورکړي، کوم به غوره وي؟

امام احمد رحمه الله ځواب ورکړ: «وربې کسان مرول، ماته تر نفلي حج ډېر خوښ ده.»(الفروع، ۲/٤۹۷)

له امام مالک رح څخه پوښتنه وشوه، چې حج غوره دی که صدقه؟ نوموړي ځواب ورکړ: حج غوره دی، البته په قحطي (وچکالۍ) کې تر حج صدقه ډېره غوره ده.(مواهب الجلیل في شرح مختصر خلیل ۲/۵۳٤)

امام شعبي رحمه الله ته یو سړی راغی او پوښتنه یې ترې وکړه: «زه حج ته د تلو نیت لرم، خو زما ګاونډیان بېوزله دي، ته څه وایې، دا پیسې چې ما د کرایې او سفر لپاره ایښې ، دوی ته ورکړم، که حج ته لاړ شم؟»

شعبي رحمه الله وویل: «قسم په الله، صدقه ډېر اجر لري! (مصنف ابن أبی شیبة)

عبدالله بن مبارک رحمه الله یو ځل له نورو ملګرو سره حج ته روان و، چې په دې وخت کې له دوی سره یوه مرغۍ مړه شوه. عبدالله بن المبارک امر وکړ چې مرغۍ په کثافاتو کې واچوئ، ملګري یې مخکې لاړل او دی وروسته پاتې شو. کله چې نوموړی د کثافاتو تر څنګ تېریده، نو که ګوري، یوه نجلۍ له نږدې کور څخه راووتله او هغه مړه مرغۍ یې ور واخیسته. عبدالله بن المبارک د هغې حالت و پوښتل، هغې ورته وویل: زه او زما خور دلته یوازې پاتې یو، زموږ لپاره د خوراک هېڅ شی نشته، او له ډېرې مجبورۍ مړه شیان موږ ته حلال دي، زموږ پلار ډېر مال درلود، مګر ظلم پرې وشو، د هغه مال لوټ شو او دی ووژل شو.

نو عبدالله بن مبارك حکم وکړ چې قافله بېرته راوګرځي او خپل وکیل ته یې وویل: تا سره څومره پیسې شته؟ هغه وویل: زر دیناره. عبدالله بن المبارک وویل: له دې څخه شل دیناره کم کړه، چې زموږ تر خپله ځایه بس شي او پاتې(۹۹۸۰) پیسې هغې نجلۍ ته ورکړه، ځکه دا مرسته زموږ لپاره د سږ کال تر حج کولو ډېر غوره کار دی. بیا هغه راستون شو. (البدایة والنهایة؛ لابن کثیر، ج۹، ص۱۸۴).

د فلسطین د علماوو شورا فتوا ورکړې چې له اړمنو کسانو سره مرسته کول، تر نفلي حج او عمرې غوره ده.

د فلسطین د علماوو د شورا مشر، «نواف تکروري» له الجزیره نړیوال تلوېزیون سره په ځانګړې مرکه کې ویلي، چې په سختو اړتیاوو کې لګښت کول، په ځانګړي ډول د جهاد په میدانونو کې، له مستحباتو څخه نه، بلکې له فرضو شمېرل کېږي، دا کار الله تعالی ته له نفلي حج، قربانۍ او نورو ټولو نفلي لګښتونو څخه غوره او محبوب دی.

درنو لوستونکو!

فلسطینیان د خوړو، اوبو، درملو او نورو اړینو توکو له کمښت سره په بې ساري ډول مخ دي. هغوی د مظلومیت، لوږې، تندې، بمباریو، یخنۍ او بې‌کوریو له خورا سختو اقتصادي ستونزو سره لاس او ګریوان دي، د زخمي مېرمنو او ماشومانو لاهم اوس له ټپونو وینې بهېږي او د درملنې هېڅ شی نه لري. د لوړو بیو له امله د عادي او ساده خوړو د اخیستنې توان نه لري، ماشومان یې پښې یبله په کثافاتو کې د خوراک توکي لټوي او د اوبو د نیستۍ له کبله تروشې او زیانمنې اوبه څښې!

نو د اسلامي امت یوه حیاتي دنده داده چې د خپلو مظلومو مسلمانانو لاسنیوی وکړي، تر نفلي حجونو او عمرو تېرشي او خپل فرضي مسؤلیت(د مظلومو وروڼو مرسته) ادا کړي، ځکه د یوې عمرې لګښت شاوخوا (۱٦۵۰) ډالر او د یوه حج لګښت شاوخوا(۳۸۰۰) ډالر دی چې په دومره پیسو خورا ډېرې اړمنې کورنۍ بسیا کېږي!

# ماه مبارک رمضان؛
# نردبان تقدس و پاکی از عصیان است

استوار




در کنار اینکه خداوند (ج) درابعاد مختلف یمن ورحمت خویش را برای مؤمنان عطا نموده در گذر گاه زمان نیز لمحه ها ومیعادهای متبرک وپر ازفیوضات را برای بنده گان خویش ارزانی فرموده است تا باشد با اغتنام از آن ایام خجسته ومتبرک استفاده نموده به قرب الهی نایل آیند از جمله چنین ایام پر از یمن وبرکت یکی هم ماه پرفیض رمضانست که در این ماه دروازه های رحمت وبخشش برروی بنده گان خداوند(ج) باز است در این فرصت آنچه که باید از لمحه ی آن استفاده بهینه صورت گیرد مناعت ووجاهت خود مؤمن است.

گرچه نکاتی را که در زیر تذکار می‌دهیم مختص وخاص نیست که در ماه مبارک رمضان مراعات شود ودر دیگر وقت ها خدای نخواسته نا دیده گرفته شود علی الرغم عملی نمودن موارد زیر در ماه مبارک رمضان فرصت های عالی تر دیگری وجود دارد که مؤمنان باید از فیوضات آن استفاده نماید.

صداقت ، راستی ،اخلاق ،نکو کاری دستگیری در کنار عبادات وطاعات مواردی اند که توشه وحاصل آن در ایام ماه مبارک رمضان بیشتر است

در ایام این ماه که رحمت پروردگار بالای توبه کننده گان جاریست وبنده گان مخلص مصروف عبادات اجرای احکام الهی استند فرصت دیگری اینست که در این ماه مملو از فیوضات رسیدگی به فقرا است به قول سرور عالمیان جناب حضرت محمد (ص) پیشوای عالم اسلام هیچ توشه ای بیشتر از این نخواهد بود، برای یک مسلمان که در ماه مبارک رمضان شکم یک گرسنه ای را که از بام تا شام به حکم پروردگار خویش روزه گرفته درحالیکه فقیر ونادار وبینوا هم است را سیر نمایی.

جناب حضرت محمد رسول الله(ص) در احادیث متعدد براین نکته تأکید نموده اند.

پس برمؤمنانست تا در این ایام خجسته به عنایت و دستگیری هم دیگر پرداخته وکام دل به کف آرند بویژه اغنیا ومستمندان می‌توانند بادادن لب نانی وسبز ورنگین نمودن سفره یک ویا چند خانواده بینوا وفقیر کسب رضای الله(ج) نمایند، هموطنان مسلمان ومتدین خداوند (ج) می‌تواند به حال هر بینوایی رسیدگی کند بینوا یان وفقرا را غنی سازدواغنیا را فقیر سازد، اما پروردگارگونه خلقت را طوری نموده که بنده گانش از چگونگی این خلقت به نحوی از انحا یمن وفیض بگیرد در این هم رمز ورازی نهفته است که خداوند (ج) به علم لدونی خویش میداند پس باید ازاین فرصت های طلایی مؤمنانی که مکنت وجاه وسیم زر دارند استفاده خوب وبهینه نمایند آنچه که الله ج حکم فرموده اند اگر مسلمانان عمل نمایند در جامعه اسلامی فقیری وجود نمی داشته باشد.

واز بعد اخلاقی روزه داران را به خوش برخوردی واخلاق نیکو توصیه وهدایت فرموده اند.

که این هم یکی از فیوضات ماه مبارک رمضان است طوری که همه می‌دانیم روزه گرفتن تنها لب بستن از خورونوش نیست بل که دهن ازگفتن الفاظ درشت ورکیک نیز است همچنین چشم بستن از دیدن نامحرمات وآنچه که حکم دین مبین اسلام است باید مراعات گردد

فشرده اینکه ماه مبارک رمضان ایام پر از یمن وبرکت است که از هر لمحه ی آن استفاده بهینه وبارع نماییم خداوندج توفیق نصیب نماید مطابق به حکم پروردگار عالمیان احکام دساتیر فرض شده را به وجهه احسن بر آورده و کسب رضای خالق خویش را کسب نماییم تا باشد بار عصیان ما کم گردیده وسرخ رو از این آزمون بدر آییم

آمین یاربالعالمین



## اسلامي نړۍ د فلسطين په اړه خپل ...

اسلامي هېواد خپله وجيبه سر ته نه ده رسولې.

سياسي کارپوهان باور لري، چې د اسلامي نړۍ ډېرى هېوادونه د فلسطين په اړه خپل دريځ د لوېديځې نړۍ، په ځانګړې توګه د امريکا او اسرائيل د فشارونو له مخې تنظيموي.

د سياسي چارو شنونکي فضل رحمن اوريا شريعت ورځپاڼې ته ويلي، دې چارې اسلامي نړۍ په ځانګړې توګه عربي هېوادونه د فلسطين له حقونو د دفاع له عملي ملاتړ څخه راګرځولي دي.

هغه زياته کړه: «اوسنيو شرايطو کې، چې د افغانستان اسلامي امارت د غرب تر نفوذ لاندې نه دى، په بشپړ استقلاليت د فلسطين د حقونو د دفاع غږ اوچتوي. دا يو مهم سياسي پيغام دى، چې کولى شي د اسلامي نړۍ په دريځ کې بدلون راولي».

اوريا ټينګار کوي، چې د اسلامي امارت دا دريځ کولى شي په عربي هېوادونو کې د فلسطين لپاره يو نوى سياسي خوځښت رامنځته کړي.

د هغه په وينا، د اسلامي امارت له دې دريځ څخه د اسلامي او خصوصاً د عربي نړۍ ملاتړ اړين دى، ځکه چې دغسې دريځ پر اسلامي دولتونو د غرب او اسرائيل نفوذ ټيټې کچې ته رسولى شي.

د سعودي عربستان په جده ښار کې د اسلامي نړۍ ټولنې له لوري دوه ورځنى کنفرانس جوړ شوى و، چې د ۹۰ هېوادونو ديني عالمانو، مفتيانو او استازو په کې برخه اخيستې وه.

د دې غونډې موخه د اسلامي مذهبونو ترمنځ د يووالي پياوړي کول، د ديني تفاهم پراخول او نړيوالې همکارۍ زياتول بلل شوي دي.

سياسي شنونکى فضل رحمن اوريا وايي: «دا ډول کنفرانسونه بايد خپلواک وي. د اسلامي امارت د استازو ګډون د دې غونډې د پرېکړو پر استقلاليت مهم اغېز لري».

اسلامي امارت د فلسطين لپاره د اسلامي نړۍ د عملي اقداماتو غوښتنه کړې، خو ايا دا دريځ به په نړيواله کچه کوم مثبت بدلون راولي؟ سياسي کارپوهان وايي، که اسلامي هېوادونه د لوېديځ له اغېزه ووځي، ښايي فلسطين د ازادۍ پر لور نوى حرکت پيل کړي او ګډو قضيو کې يو دريځ ولري.

**نذيرمنيب**

## حفاظت از عفت، عزت و حقوق ...

زوجيت زنان را يقينی، حقوق مهر و ميراث‌شان را حاصل و از تمامی حقوق آنان نظارت کنند. در بيانيه آمده است: حقوق اساسی زنان افغان در چهارچوب شريعت اسلامی و فرهنگ و عنعنات جامعه افغانی تأمين شده است، مگر بايد فراموش نشود که ما حقوق زنان افغان را در يک جامعه اسلامی و افغانی زير بحث داريم که با جامعه غربی و فرهنگ آنان تفاوت های آشکار دارد که در حين محاسبات بايد در نظر گرفته شود.

اين در حالی است وزارت امر بالمعروف و نهی عن‌المنکر هفته گذشته دست‌آوردها در راستای تأمين حقوق زنان را در يک کنفرانس خبری بيان کرد.

## افغان کډوال نورو ...

د سپکوونکي چلند پر ځای خپل هېواد ته لومړيتوب ورکړي. په لومړي ځل د افغان راستنېدونکي شانداره هرکلى شوى او ان تر خپلو اصلي مېنو په حکومتي وسايطو کې رسول شوي. مسلمانو هېوادونو نه افغانانو سره د اسلامي ورورولۍ په رڼا کې د غوره چلند هيله کېږي او له نورو هېوادونو به د حضرت علي رضی الله تعالی د هغې مقولې په رڼا کې چلند غوښتنه چې د مصر والي ته يې ويلي و: (( مسلمانان دې په اسلام کې ورونه دي او هغه غيرمسلمانان چې دې د حکومت په قلمرو کې اوسي، په انسانيت کې ورونه دي.)) له افغانانو سره د انساني چلند په هيله يې.

## عشق اباد او کابل د نفتو او ...

کولو هم ټينګار کړى. د يادونې ده، چې تېرو څه بانديې دريو کلونو کې په بېلابېلو هېوادونو کې د اسلامي امارت ډيپلوماټيکو استازوليو هڅه کړې، چې د دوه اړخيزو اړيکو پياوړتيا او د بهرنيو پانګوالو جذب سره د هېواد اقتصادي ودې ته زمينه برابره کړي.

## تېرو ۱۱ مياشتو ۱۱۰۰ ټنه جلغوزي ...

اتريش، اردرن، عربي متحده اماراتو، برېټانيې، امريکا، ايټاليا، استراليا، جرمني، ترکيې، چين او يوشمېر نورو هېوادونو ته شوي دي.

کارپوهان وايي، د افغانستان جلغوزي چې په نړيوالو بازارونو کې ځانګړى ارزښت لري د صادراتو د زياتوالي لپاره يې لا زياتو هڅو ته اړتيا ده. دوى زياتوي، کچېرې دغې برخې ته لا پاملرنه وشي په مټ به يې په کور دننه خلکو ته کاري زمينه برابره شي.

ياده دې وي، چې په تېرو دريو کلونو کې اسلامي امارت د هېواد اقتصادي پياوړتيا برخه کې ژمنتيا ثابته کړې او د هېواد وچې مېوې صادراتو، انتقال، پروسس او پياوړتيا ته يې ځانګړې پاملرنه کړې ده.

## پاکستانيو چارواکو د افغان کډوالو ...

د ټولو بې اسناده کډوالو ترڅنګ د اسناد لرونکو افغان کډوالو د ايستلو پرېکړه کړې. پاکستاني چارواکي وايي، دغو کډوالو ته د ايستلو لپاره پوره وخت ورکړل شوى او د کډوالو د ستنېدو پر مهال به له هيچا سره ناسم چلند نه کېږي. له پاکستانه د کډوالو ايستلو پروسه د ۲۰۲۳ کال د نومبر په مياشت کې پيل شوه. پاکستاني چارواکو ويلي، هغه کسان چې په دغه هېواد کې پاته کېږي بايد ټول قانوني پروسې بشپړې او د دوى اساسي قانون ومني.

## د امر بالمعروف، نهي عن‌المنکر او ...

پاليسي مرستيال په توګه ټاکل شوى دى. دا په داسې حال کې، چې د اسلامي امارت زعيم اميرالمؤمنين حفظه‌الله د حکومتولي د اصولو په بنسټ وخت نا وخت د مسوولين په دندو کې ادلون او بدلون راولي.

## مذهب رسمی در افغانستان فقه حنفی ...

روابط ميان کشورهای جهان به‌ويژه کشورهای اسلامی شده است. به گفته وزارت عدليه، کشور شاهی عربستان سعودی می‌تواند در تقويت اين روابط نقش مهم و کليدی ايفا کند.

گفتنی‌است که کنفرانس بين‌المللی «ايجاد پل ميان مذاهب اسلامی» در شهر جده عربستان سعودی با حضور مقام‌های دولتی کشورها و علمای اسلامی از مذاهب مختلف برگزار شده است.

## د افغانستان او ايران پر روغتيايي ...

ناسته کې دواړو لوريو دراتلونکي کال له‌پاره د روغتيا، درملنې او طبي زده‌کړو په برخه کې د همکاريو په پروګرام خبرې کړې دي.

دا په داسې حال کې ده، چې ايران په تېرو کلونو کې هم د افغانستان له روغتيايي سکتور سره په بېلابېلو برخو کې همکاري کړې ده.

## له هېواده بهر؛ متحده عربي اماراتو ...

په موخه مراجعه کوي.

د يادونې وړ ده، چې د احصايې او معلوماتو ملي ادارې د برېښنايي پېژندپاڼو د وېش لړۍ د پراختيا په برخه کې د خپلې ژمنتيا پر بنسټ د روان کال په چنګاښ مياشت کې په متحده عربي اماراتو کې ياد مرکز پرانېست، چې بهر مېشتو هېوادوالو ته لا ډېرې اسانتياوې برابرې شي

## بهره‌برداری يک شبکه آبرسانی ...

در جريان تطبيق اين پروژه برای ده‌ها باشنده محل نيز زمينه کار فراهم شده است. فراهم‌سازی آب آشاميدنی صحی برای شهروندان کشور از اولويت‌های ادارات امارتی و غيرامارتی به شمار می‌رود.

Shariat
Daily

# شریعت

د دولتي ورځپاڼو رئیس:
انجنیر عُزیر بریالی / ۰۲۰۲۵۲۶۳۴۰
مسئول مدیر: فاروق غلجی/ ۰۷۷۸۶۳۵۸۵۲
مسئول سکرتر: خالد افغان/ ۰۷۷۳۰۶۲۸۳۲
د شریعت برېښنا لیک: info@shariatdaily.com
پته: اتمه ناحیه، د المپیک څلورلارې، د حضوري چمن ختیځ
کابل ـ افغانستان
شماره توزیع و شکایات: ۰۲۰۲۳۱۲۵۰۹ / ۰۷۶۶۰۴۴۹۶۶/ ۰۷۳۱۶۰۶۰۷۳

Shariat
Published by
Islamic Emirate of Afghanistan
Eng, Uzair Baryaly ، Director of Gov.dailies
0202526340
Chief Editor : Farooq Ghaljai/ 0778635852
Email: info@shariatdaily.com
ویب سایت: WWW.shariatdaily.com

Sunday 09 March 2025 / Established: 1995 / 2nd Season / Vol: 702


شیخ‌عبدالحکیم‌شرعی:

# مذهب رسمی در افغانستان فقه حنفی بوده، امامان و علمای مذاهب دیگر نیز قابل احترام اند



شیخ عبدالحکیم شرعی، سرپرست وزارت عدلیه می‌گوید، در افغانستان مذهب رسمی فقه حنفی بوده، اما امامان و علمای پیرو مذاهب دیگر نیز قابل احترام اند.

بربنیاد خبرنامه، سرپرست وزارت عدلیه که در کنفرانس بین‌المللی «ایجاد پل در میان مذاهب اسلام» در کشور عربستان سعودی اشتراک کرده، این موضوع را طی سخنرانی در این کنفرانس بیان کرده است.

آقای شرعی تفاهم میان علمای تمام مذاهب اسلامی را برای اهداف مشترک یک نیاز مهم دانسته است. او همچنان در بخشی از سخنانش خواهان تقویت و استحکام ... ص۳

## د افغانستان او ایران پر روغتیایي سکتور خبرې وشوې

د عامې روغتیا وزارت سرپرست مولوي نورجلال جلالي په کابل کې د ایران له سفیر علي‌رضا بیکدلي سره کتلي دي.

په کابل کې د ایران سفارت په خپله ایکس پاڼه لیکلي، په دې ... ۳مخ

## له هېواده بهر؛ متحده عربي اماراتو کې څه باندې ۳۷۰۰ برېښنایي پېژندپاڼې وېشل شوي

د احصایې او معلوماتو ملي اداره وايي، په متحده اماراتو کې د اسان خدمت مرکز له لوري څه باندې ۳۷۰۰ افغانانو ته برېښنايي پېژندپاڼې وېشل شوې دي.

د متحده عربي اماراتو په ابوظبی ښار کې د اسان خدمت مدیر نعمان اکبر ویلي، چې ۳ زره ۴۵۰ افغانانو ته برېښنايي پېژندپاڼې، ۲۷۰ تنو ته د برېښنايي پېژندپاڼو له وېش وروسته خدمتونه او ۶۵۰ نورو ته د کاغذي پېژندپاڼو د سمون خدمتونه وراندې شوي دي.

د نومورې په وینا، یاد مرکز ته په کاناډا، امریکا، اروپایي هېوادونو او په متحده عربي اماراتو کې مېشت افغانان د خپلو برېښنايي پېژندپاڼو او هویتي ستونزو د حل ... ۳مخ



## جمعیت هلال‌احمر افغانی به صدها خانواده بی‌جاشده در تورخم غذای آماده شده توزیع کرد

جمعیت هلال احمر افغانی اعلام کرده که برای ۶۰۰ خانواده بی‌جا شده در ساحه تورخم غذای آماده شده (پخته) همراه با خرما توزیع کرده است.

بربنیاد خبرنامه، سه هزار وعده غذایی آماده شده و مقدار چهار تُن خرما از سوی رضاکاران جمعیت هلال‌احمر افغانی به ۶۰۰ خانواده بی‌جا شده در تورخم توزیع شده است.



تورخم از بخش‌های در امتداد خط فرضی دیورند است که در آن دروازه عبوری میان افغانستان و پاکستان واقع شده است.

## هلمند کې د تاریخي سیمو د حریم ټاکنې لړۍ بشپړه شوې

د هلمند د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست وایي، دغه ولایت کې د ۸۷ تاریخي سیمو د حریم ټاکلو لړۍ بشپړه شوې ده. دغه سروې د اطلاعاتو او فرهنګ وزارت یوې تخنیکي ډلې د هلمند په مرکز او ولسوالیو کې د تاریخي سیمو د غصب مخنیوي په موخه کړې ده.

د مسوولینو په خبره، د تاریخي سیمو خوندیتوب لپار به په بل پړاو کې پر ځینو تاریخي سیمو احاطوي دېوالونه هم جوړ شي. ورته مهال ځینې فرهنګیان او لرغونپوهان د تاریخي سیمو د حریم ټاکنه د دغو سیمو ساتنې او د غصب مخنیوي په برخه کې مهمه چاره ګڼي.

## خوست کې ۱۳ تنه د نشه‌يي توکو د پلور په تور نیول شوي

د خوست امنیه قوماندانۍ د تېرو دوو اوونیو په لړ کې د نشه‌يي توکو د پلور په تور د ۱۳ تنو له نیولو خبر ورکړی دی. د یادې قوماندانۍ ویاند طاهر احرار وایي، چې دغه کسان له نشه‌يي توکو سره د مبارزې مدیریت له لوري د مرکز او تنیو ولسوالۍ په بېلابېلو سیمو کې د عملیاتو په ترځ کې نیول شوي دي.

د نومورې په وینا، له دې کسانو لسګونه نشه‌يي ګولۍ، دوه کیلوګرامه چرس، یوه اندازه هیروبین، شیشه او تریاک تر لاسه شوي دي.

د خوست امنیه قوماندانۍ ویاند زیاته کړې، چې دغو کسانو په لومړنیو تحقیقاتو کې اعتراف کړی او له خپلو دوسیو سره یې یو ځای اړوندو ارګانونو ته سپارلي دي.



## بهره‌برداری از یک شبکه آبرسانی در کندز



وزارت احیاء و انکشاف دهات از افتتاح و بهره‌برداری یک شبکه آبرسانی صحی به ارزش ۱۴۵ هزار دالر در ولایت کندز خبر می‌دهد.

به گفته وزارت احیاء و انکشاف دهات، این شبکه آبرسانی در قریه «حاجی نعیم‌جان» ولسوالی دشت‌ارچی ولایت کندز ساخته شده است.

بربنیاد خبرنامه، هزینه ساخت این شبکه آبرسانی از سوی موسسه «داکار» پرداخت شده است.

وزارت احیاء و انکشاف دهات، با تکمیل و بهره‌برداری این شبکه آبرسانی زمینه دسترسی ۳۶۳ خانواده به آب آشامیدنی صحی، فراهم شده است. ص۳




## عملیات نیروهای دولتی سوریه برای سرکوب شورشیان مربوط به بشارالاسد

بربنیاد گزارش رسانه‌های بین‌المللی، عملیات نیروهای دولتی سوریه برای از بین بردن شورش‌های راه‌اندازی شده توسط افراد مربوط به بشارالاسد وارد دومین روز شده است. براساس گزارش، این عملیات پس از ایجاد شورش از سوی افراد مسلح مربوط به رئیس جمهور اسبق سوریه در شهر لاذقیه این کشور آغاز شده و به شدت ادامه دارد. بربنیاد معلومات رسانه‌ها، در دو روز گذشته و در نتیجه عملیات راه‌اندازی شده، نزدیک به ۲۰۰ تن کشته شده‌اند. احمد الشرع، رئیس دولت انتقالی سوریه گفته است که نیروهای دولتی این کشور بقایای دولت بشارالاسد را تعقیب و آنان را به محاکمه خواهند کشانید.



## وزیران خارجه عربستان سعودی و ایران در ریاض دیدار کردند

سید عباس عراقچی، وزیر امور خارجه ایران با شاهزاده فیصل بن فرحان، وزیر امور خارجه عربستان سعودی در ریاض دیدار کرد.

این دیدار در حاشیه اجلاس وزرای خارجه کشورهای اسلامی در شهر جده عربستان سعودی صورت گرفته و در آن روابط دوجانبه میان تهران و ریاض به بررسی گرفته شده است. وزیران خارجه عربستان سعودی و ایران بر اراده دو کشور برای پیش‌برد هدف مشترک رهبران دو کشور به هدف توسعه مناسبات تاکید کرده‌اند. در خبرنامه آمده است: طرفین همچنین با بررسی آخرین تحولات منطقه‌ای و بین‌المللی، بر ضرورت اهتمام جهان اسلام برای مواجهه با چالش‌ها، به‌ویژه در رابطه با فلسطین اشغالی و جلوگیری از توطئه محو فلسطین از طریق کوچاندن‌اجباری مردم غزه از این باریکه تأکید کردند.

## امریکا کې یو تن د وژنې په تور اعدام شو

د متحده ایالتونو د سویلي کارولینا په ایالت کې تېره ورځ د وژنې په تور محکوم شوی کس په مرموز ډول ووژل شو. اعدام شوی ۶۶ کلن شخص براډ سیګمون نومېد او په ۲۰۰۱ میلادي کال کې په دې تورن شوی و، چې د خپلې ملګرې مور او پلار یې وژلي وو. دا په داسې مهال ده، چې په متحده ایالتونو کې د روان ۲۰۲۵ میلادي کال راپدې خوا شپږ او تېر کال بیا ۲۵ تنه د مرګ په سزا محکوم شوي دي.



## ډونالډ ټرمپ خامنه‌يي ته د اټومي مذاکراتو بلنه ورکړې

د امریکا متحده ایالتونو ولسمشر ډونالډ ټرمپ د ایران مشر ایت‌الله علي خامنه‌يي ته په یو لیک کې د اټومي مذاکراتو بلنه ورکړې ده.

نوموړي له فکس نیوز سره په مرکه کې ویلي، دا به غوره وي چې ایران سره یوې هوکړې ته ورسېږو. یاده دې وي، چې د ایران د بهرنیو چارو وزارت تر اوسه د ټرمپ دې څرګندونو ته کوم ځواب نه دی ویلی.